خیر الکلام کلام اللہ

# دَ قرآن

# خوږے خبرے

مصنفه

(مولانا الحاج) حبیب الرحمٰن مدظله

مصنفِ تفسیرِ حبیبی

دارُ التّصنیفِ رستم

مردان

کتبه محمد گل رحیم اسماړی عفی عنه

[illegible]ل ۱۰۰۰ [illegible] منظور پریس پ[illegible] [illegible] هدیه

دموند وخایوند

(۱)
دارالتصنیف رُستم ضلع

(۲)
کتب خانۂ رحیمیہ پشاور
اندرونی کابلی گیٹ

یا فتاح وبک نستعین

# دقرآن خوږې خبرې

(مصنفه)

مولانا الحاج حبیب الرحمن مدظلہ

مصنف

تفسیر حبیبی پښتو

دار التصنیف رستم - مردان

بار اول ۱۰۰۰ (منظور عام پریس پشاور) ہدیہ ۸ر

اُوده نصیب دَ مسلمان به بیا بیدارشی کله؟
خزان زپلے گلستان به بیا گلزارشی کله؟
دَ جهالت په نوی زخم پروت دے له دیرے مودے
دَ عِلمیت په تریاق جوړ به دا بیمارشی کله؟

(از دیوان عبد الرحمانؒ)

# فهرستِ مضامین

نه املاك دَسلیمان په هزار چنده

نه یوه کړے طاعت په دا دُنیا

# بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

الحمد لله وکفی وسلام علی عبادہ الذین اصطفیٰ :۔ مسلمانانو
دوستانو! زهٔ چه د قرآن د پښتو تفسیر حبیبی کښ د بعض د اسې گرانو
خبر و سره مخامخ شم چه د هغې د پوهه کولو د پاره د ډیر و دلیلو نو ضرورت
وی او د کاغذ د گران والی په وجه زهٔ هغه پوره اونه لیکلے شم - په دے
وجه دا را ته ښه ښکاره شوه - چه دا قسم گرانے مسئلے په یوه کتابچه کښ راوړم
که د خدائے توفیق شامل حال شهٔ نو دا به چهاپ کړم چه د تفسیر
کتونکو ته په دے آسانیا حاصله شی ځکه دے نوم "د قرآن خوږے خبرے"
بردم دا ویره دنیا په ځان کښ عجیب عجیبه مخلوقات لری ولے په دے کښ
دا حضرت انسان د ټولو نه زیات عجیبه دے او دا ځکه چه ده ته خدائے
عقل ور کړے دے ۔ دے په دے عقل د حق او د باطل جدائی کوی
فائدهٔ او نقصان پرے پیژنی ۔
دا دنیا د رنګارنګ څیز و نو نه جوړه کړے ده هر یو څیز د بل نه په رنګ
شکل او خوئے سره جدا دے څوک ښه وی څوک بد وی - گویا دنیا
د دے اختلاف او د قدرت د کارګذارئ یوه کارخانه ده ۔

گلہائے رنگ رنگ سے ہے رونقِ چمن
اے ذوقؔ اس جہاں کو ہے زیب اختلاف سے

ورسره خدائے دا عقلونه هم په تفاوت ورکړهٔ کومے خبرے چه نا پوهه پرِنه پوهیدهٔ په هغے هوښیاران پوهه شوی دی بخپله هم په نیغه لاره لاړهٔ او دلوروو دپوهه کولو کوشش ئے هم اوکړو. او ځان ته ئے په دے کار ډیر ډیر ثوابونه حاصل کړهٔ

## نعت

په زرګونو درودونه دوی په هغه پاک روح دخوږ نبي چه بخپله هم په نیغه لاره لاړ. او د دنیا د پاره د رښتیا سبب اوګرځیدهٔ او د دنیا خلق ئے په نیغه لار روان کړه. دے نور وه او ددهٔ ملګری د ستورو مثال رڼا کونکی وو.

زهٔ په خپل نا پوهه فکر لو یو کتو نکو ته څو قرآنی مسئلے وړاندِ کوم. او څومره چه ماته د خپلو استاذانو او دینی کتابونو نه معلومه شوے ده هغه لیکم. تاسو به خالی زړهٔ دا اوګورئ. که ستاسو خوښے شو نو قبولے ئے کړئ. که نه ما ته ځما غلطی ښکاره کړئ. زهٔ به د هغے نه راو ګرځم. او ستاسو شکریه به ادا کړم.

په دے زمانه کښی د اختلاف بازار ګرم وی. ځکه بعض حضرات په دے ضد باندِ د کتاب کتونه مخکښی د کتاب د خراب الی فیصله اوکړی او د یو بنده حق نه باطل ووائی. دا سے به نه کوئ.

دے اختلاف دحق او باطل تمیز وړک کړ۔ او عوام ئے په دے
کښ حیران کړه۔ دوئی کله وائی په دنیا کښ هدو حق شته نه
کله وائی چه نه ټول حق دی او نه ټول باطل دی۔ او کله وائی
څه به حق وی او څه به باطل وی۔

مسلمانانو دا عقل د دے دپاره دے چه په دے به دحق
ودباطل جدائی کوو۔ مونږ چه په دے عقل د دنیا فائده او
نقصان معلوموو۔ نو د قرآن او دین اسلام په باره کښ به دے
ولے بیکاره پریږدو۔ نو سماڅئ چه سوال جواب شروع کړو چه

## دا دنیا څه رنګ پیدا شوه

دا دنیا پخپله جوړه شوے ده که چا جوړه کړے ده؟ دا دنیا
داسے ناپایا به حریاب دے۔ چه عقل یکښ دیرے ټکرے خوری
خو چه خدائے د چا مل وی هغه په دے کښ حق ته اورسی
الله دِ حُما مل شی۔

کوری بوا انبکاره خبره ده چه هیڅ مکان بے جوړونکی نه وی
پس دا دومره لوئے عالم به بے جوړونکی څه رنګ جوړ شی؟ که دا
دنیا منازه نه وے او په دے کښ رنګارنګی نه وے۔ په دے کښ
نوَر کله وی کله نه وی۔ سپوږمئ کله غټه وی کله ښوګۍ وی

کله سپینه وي کله ځنګ د راونیسي. د غسې هوا کله چیره وي کله لږه وي. کله وي کله نه وي. وني کله تیغونه وي کله میوه داره وي.

د غسې ځناور کله اوږي وي. کله ماړه وي. کله روغ کله ناجوړه وي.

په دې کښې موږ د انسانانو خوک حرص او حاجتونو د اسې خوځونو راکبرګړي یو چه د ې د انه عقل او فکر او بلکه او انساني عزت او شرافت ئې د انه رخصت که.

انسان فقط خوراک څښاک او مکان ته محتاج نه دی. بلکه عزت، جاګیر، مالکین، اکرم، پیغزو تولو ته محتاج دی. د انسان دیر د خبر وه چا ته محتاج که. په دې هر ځائ ذلیل شه سپاهي او چپراسي ئې په ست سود دی.

تو آخر څه موږ د اعقل به دادوره اختلاف بې دچا کارکونکي څه رنګ ادمني؟. ما ته خود اسې ښکاري چه په چاکښې زیاته خوبي ده هغه ئې بنه قید کړې دي. تاسو نه کوي چه په جیل خانه کښې په سوونو قید یانو یو سپاهي دوه مقرر دي دلې که چا بادشاه قید که نو بیا په هغه په

سوونو سپاهیان پیره ورکوی۔

په آسمان کښ نور سپوږمۍ ډیر عزتمند وی او په ځمکه کښ انسان اشرف مخلوق دے۔ په نور سپوږمۍ کښ رڼراده او په انسان کښ عقل دے۔ په رڼرا دنیا روښانه ده۔ او په عقل دحق او باطل تمیز کیږی۔

په دے کښ داحاکمان چاپید اکړی دی چه هغه په دوی حاکم دے۔ دوی د هغهٔ قیدیان دی۔ هغه دوی نه بیکار اخلی هغه دوی په قلاره نه پریږدی۔ چه دوی په ځان سفروده نه شی او خوک دا اونه وائی چه کنے دوی خود مختاره بے پروا دی۔

دغسے دوی په هم خپلو خوار وزار و حاجتونو او محتاجو ترکوی او دخپل حاکم پته برلګوی۔ د غه حاکم اعلی چه دده په محتاجو ژبوکښ جدا جدا نوموند دی ده ته مونږ الله وایو۔

## توحید

دلته ځمونږ ډیر هوښیار هوښیار خلق خطاشی او هغوئ سره دا دے چه د دنیا په علمونوکښ ډیر نوی کنړ لے شی دا حاکم اعلی یونه کنړی۔ بلکه وائی چه دا درے دی لکه عیسایان فرنګیان شو

په دے مسئله قرآن شریف ډیرځایه دوی پوهه کړی دی. او ځوك وائی چه دا دوه دی. یو خیر پیدا کونکے. او بل دشر پیدا کونکے دے. اول ته یزدان دویم ته اهرمن وائی.

ځوك وائی بنده دخپلو کارونو ځپله خالق دے. په دے کښ گویا چه څومره مخلوق دی نو دومره بر خدایان وی. دوی ټول گویا خدایان گنړمنی. او په یو خدائے نه صبریږی.

## دَتثلیث رَد

حما غونډے کم علمه دخولے نه یو دا سے قوم ته ددے غلطے بنوولے چه ټن خلق دهغوی په شان کیدو فخر گنړی. گرانه خبره ده خو کله کله دډوکی دلاسه هم نښلوی.

دا عیسایان که ددے خدایان منی نو دوی دا هم وائی چه دادرے په حقیقت کښ یو دے. او په دلیل کښ یاداوائی چه دا په انجیل کښ راغلی دی. یا داوائی چه ځمونږ پلارانو نیکونو داسے وئیلی دی. بل دلیل ورسره نشته.

دے خواته ځمونږ دناپوهه نه ناپوهه دانه منی چه یو درے کله کیږی. او درے یو کله کیدے شی؟ درے خو درے دی چه دوه هم یو نه شی کیدے. نو په داسے خبره کښ عیسایان په دے

اروی - او دَ چا هم نهٔ منی چه دَ دے غلطے عقیدے نه واوری
پاتے شهٔ انجیل۔

## دَ انجیل کتاب

نوهٔ دوی علماء په دے قائل دی چه اصلی انجیل په عبرانی کښ
وو۔ او هغهٔ ورک دے۔ او ضرور به ورکیدهٔ ځکه چه هغه خود
هغهٔ قوم دپاره وو۔ په کوم کښ چه عیسیٰ علیه الصّلوٰة والسّلام
موجود وو۔ چه عیسیٰ علیه الصلوٰة والسلام لاړ نو کتاب به ئے
ولے پاتے کیدهٔ۔
قرآن که پاتے دے نو د اخو د ټولو زمانو او د ټولو قومونو ئے
دپاره راغلے دے۔
دا انجیل نن که په نورو ژبو کښ ترجمه دے نو دا خو دَ
ترجمه کونکی په خوښه لیکلے شوے دے۔ د دے وجه ده چه
مختلفے ترجمے را او خلے او او کو دئ۔ نو په ز ر گونو اختلافونه
په یکښ بیا مومی۔ لویو لویو پادریانو دے اقرار هم کړی دی
چه و اتمی په انجیل کښ ډیر ے اد لے بد لے دی۔ تو د یے چه
د سوو نو نه ز ر گونو ته رسیدلی دی۔
نو تاسو پوهه شوئ چه دیو د ر ے منل او د دے رابو یو منل دَ

د عقل اوکړے خبره ده - او دا - هغه انجیل خبره ده چه کوم کښ
چه په سوونو زدګونو غلطئ دی

تاسو اولیده چه فرنګیان ډ غټ غټ مشینونو تړد ے چه
بره نه برکه په الوتکو کښ الوتے شي. خو دا دنی جماعت دوږدکی
هومره عقل هم نه لوی. چه یو ته درے او درے ته یو وائی - او دا
ولے؟ دا ځکه چه دوی دے خوا عقل ته توجه نه ده ورکړے
د دوی عقل خو ټول تال د دنیا په کارونو کښ اخته دے -
کله کله دا اتوار په ورځ ګرجے ته تلل قد دے عبادت ګڼړی.
دا قسم خلق د دین په خبرو کله پوهیدے شي!
دا صحیح ده چه دوی په خپل عقل د دنیا کارکوی نو دے
کښ ډیر ماهران دی.

د دلته ورسره دا هم ثابته شوه چه څوک خپل ټول عقل
په دین کښ اولکوی د هغوی سره د دنیا عقل مند کله مقابله
کولے شي.

نو د دنیا عیسایان یو طرف ته دی او نور خلق بل طرف ته
دی ددی وائی چه یو درے او درے یو. او دنیا وائی دا غلطه
خبره ده. اوس تاسو په هم فکر اوکړئ چه کومه خبره حقه

اوکومه بالمله ده؟

## بشر خدائے نه شی کیدے

بل دوی خدائے بنی آدم ته وائی حال دادے چه خدائے هغه ذات ته ویل پکار دی چه چاته محتاجه نه دی او بشر محتاج دے۔ داوبے کیږی۔ نو بے کیږی جوړ نا۔ بوره دی نو دا قسم بشر که عیسی علیه السلام وی او که عزیر علیه السلام وی او که د هندوانو رام کنهیاجی وی۔

دا خبره د مخکښ خبرے نه هم زیاته د بے عقلئ ده چه ته خدائے او چرته بشر توبه ربه

دا هر قسم غلطئ په دے وجه کیږی چه مونږ د خدائے معنے او د هغه لوئی او قدرت نه پیژنو۔ د غسے مونږه د مخلوق په عاجزئ او کمزورتیا پوهه نه یو۔ کنی مونږ به مخلوق ته د خالق صفات نه وو ورکړی او نه به مونږه خالق ته د مخلوق صفتونه ورکړی وو۔ الله تعالی د مونږ ته د دین علم راکړی آمین

## د بنده کارونه او اختیار

مونږ چه وایو چه بنده د خپلو کارونو خالق دے دے دا په خپل اختیار کوی نو دا ده ئه دا اختیار د چا په اختیار کښ دے

د اخو پکار نه دی چه دا دهٔ په اختیار کښې شی بلکه دا د اسے خبره
ده لکه دیوانسان انسان جوړیدهٔ یا دهٔ پیدا کښې ړوند والے
یا کونګے والے او کوݨ پیدا کیدهٔ دا خبرے دهٔ په اختیار کښې نه
دی بلکه چه څهٔ رنګ خدائے غوښته هغسے ئے پیدا کړه دغسے
د بنده اختیار هم خدائے پیدا کړ۔ دا اختیار د روح سره اتلق لری
چه روح ئے پیدا کړه نو اختیارے ورته ور کړ۔ دغسے بنده ته قدرت
خدائے ورکړه۔

ته نه ګورئ چه څومره لاس خپے شل شی۔ نو دهغوئ نه
قدرت لاړ شی۔ په دے کښې انسان بیا قدرت نشی راوستے۔
مطلب دا دے چه د هر کار په زرګونو سببونه دی۔ او دا ټولے
سببونه خدائے جوړ کړی دی۔ دغسے دا بنده هم خدائے جوړ
کړے دے۔ نو دا څه رنګ څوک ویلے شی چه بنده د خپلو
کارونو پیدا کوونکے دے که په د اسے حالاتو کښې بنده
ځان د خپلو کارونو پخپله خالق ګڼړی نو دا به د اسے وی

## یو مِثال

لکه دوه تنه د یو پیټي په فصل جهګړه کوی د ایو تن وائی چه زهٔ
د امنم چه دا پټے ستا دے په دے کښې تخم هم تا اچولے دے

او دا یوے هم ناکرے دہ . او هر قسم خرڅ پرِ هم ناکرے دے خو سرہ د دے . د دے پتی د افصل څما دے په داسے دعوہ به څوک اعتبار اوکری؟ نو دا تول دیو خدائے نه زیات منونکی خلق دا قسم مدعیان دی خدائے دِ د وی پوهه کری آمین کورئ هر څه د خدائے دی او تاسو دسرہ عیسی علیہ السلام کله عزیر علیه السّلام او کله رام او کله څوک ګرځوند ے مخلوق شریکه وئ . دا سے نامعقوله دعوی به څوک اومنی؟ لبږ د عقل نه کار واخلئ .

یا د دے مثال داسے دے لکه یو سرے ژوند ے دے او چغے وهی چه څما بڅه کونډه ده او څما بچے یتیم دے نو ده د اچغے که هر څه چه دی خو دے دا اقرار کوی چه څما ښځه کونډه نه ده او څما څوی یتیم نه دے .

څوک چه څان مخلوق ګڼړی او بیا هم وائی چه مونږ دخپلو کارونو پیدا کونکی یو . یا بل بنده مخلوق ګڼړی او هغه ترخالق وائی نو دے په دے کښی دا اقرار کوی چه څما دعوہ غلطه ده .

## دوه خدایان منونکی

څوک چه وائی چه د خیر خالق الله دے او د شر خالق بنده دے یا

شیطان دے. نو په اصل کښې دېته دا فکر پېدا شوے دے چه د شر په کولو بنده ته شریر ویلے شي نو که خدائے د شر خالق شه نو بیا به خدائے ته د دے بدئ نسبت او شي د دېنه د بچ کېدو د پاره دوي د بدئ بل خالق او مانه.

خو دنته دوئ خطا شو گورئ که پلیتي په چا اولگي نو هغه پلیت شي. ولے نور چه په پلیتئ اولگي نو نور به دے نه پلیتېږي. بلکه پلیتي پاله کړي. د غسے د خدائے نور چه په هر څیز احاطه کوونکے دے نو د خدائے نور هر څیز ته رسي او څیزونه عغه ته نه رسي. پلیتي د پلیتئ ځائے پلیته وي خو د پلیتئ خالق پېره نه پلیتېږي. نو انسان چه د بدئ د کارونو ځائے دے. دے به بد گڼړلے شي او د بد خالق به بد نشي گڼړلے. نو دوي په پوهه کښې خطا شو.

بل د یو څیز د هر چا د پاره بد کېده ضروري نه دي. کېدې شي چه د اکوم څیز ته چه تاسو بد وائی دا د چا د پاره ښه وي لکه لاس پریکول د غل د پاره بد دي ولے د حکومت او د رعیت د پاره ښه دي. نو معلومه شوه چه خدائے لکه چه د خیر خالق دے د غسے د شر هم خالق دے.

# په توحید دلیلونه

مونږ ته بندګان ځکه وائی چه په مونږ کښ نقصانونه دی او مونږ د خپل ځان په کامل والی قادر نه یو۔ او الله ته الله ځکه والئ چه هغه د هر قسم عیبونو نه پاك دے او په هر قسم کمالاتو موصوف دے۔ نو اوس که مونږ دوه خدایان او منو نو نیم مخلوق به د یو خدائ وی او نیم به د بل۔ نو دواړه خدایان په ځان کښ عیب لرونکی شو ځکه چه دواړه په نیم مخلوق کښ څه اثر نه شی کولے۔ او که داد واړه په ټول مخلوق کښ پوره اثر کولے شی نو بیا به دا خبره منل پریوزی چه په یو څیز کښ یو سیر قدرے څیز راځی او دا دواړه خدایان یکښ پوره پوره اثر کوی نو په دے کښ به دوه سیره څیز راولی۔ او د دے نتیجه به دا وی چه دا لوخے برمات شی۔ نو په ځائے د دوه خدایانو چه یا په نیم مخلوق قدرت لری او په نیم نه لری خدایان ناقص ثابتیږی۔ او که دوی کامل په مخلوق اثر لری تو مخلوق تباه کیږی۔ په دے وجه به دا وی چه یو کامل خدائے په هر قسم کاملو صفاتو موصوف او منلے شی۔

او دا معقوله خبره ده چه تاسو د دنیا د اتوله کارخانه یو په بل او ګوری چه دا په آخر کښ یو ته ګوری۔ دا نو چه په توله دنیا کښ به ټولو

کورونو کښې د رڼا ورکوي دده یو نور کرشمې دی. دا د دنیا شماره
او کوړئ سوونه زرګونه - لکهونه - کروړونه دی خو چه په آخې
کښې راځي نو دا ټول د یو هند سے نه جوړ دی - په انسانانو کښې انسان
یو د سر څیز دے دغسې ځناور او په ټولو کښې شریک دے بیا جاندار د
اصل څیز دے بیا وجود، په ټولو موجوداتو کښې د سر د موجوداتو
څیز دے خو د موجودات عالم دا وجود غیب د بل ورکړے شوے
وجود او عارضی دے او دا د موجوداتو نړیو غیر څیز دے دغه وجه ده چه
د دنیا موجودات کله موجود وي او کله نه وي - او د موجوداتو دا وجود
هم تسم قسم دے لکه آسمان او زمکه موجود دی او ډیره موده به موجود
وي - او زه او ته هم موجود یو خولږه موده به یو - نو تاسو به پوهه
شوي یئ - چه د دنیا په موجوداتو او موجود کښې فرق دے د
موجوداتو او جود داسے عارضی دے لکه دا د بو ګرم والے دا او دیه وجه
را غلے دے نو دا ورګرم والے ذاتی دے او دا د بو ګرم والے عارضی دے
یا لکه د نور رڼا چه په آئینه پریوزي نو د نور رڼا ذاتی ده او
د آئینے رڼا عارضی ده -

دغسے دے ټولے دنیا دا وجود عارضی دے او دا ورته چا داسے
ذات ورکړے دے - چه د هغه وجود ذاتی دے او د غه ذات بغیر

دالله نه بل شوک کیدے نشی نو دے نه هم داثابت شوه چه دا دنیا پخپله نده موجوده شوے. بلکه د دے شوک پیدا کونکے شته اوهغه الله دے چه دهغه وجود ذاتی او اصلی دے او د دنیا د موجوداتو وجود یو سورے دے. او اصلی وجود یو الله دے لکه نور یو دے او اثر ئے په هر کور او په هر ځائے کښ دے.

نوګویا داثابت شوه چه دالله وجود او د الله ذات او صفات یو دی. دالله دذات نه وجود نه لرے لیرې. او نه دالله صفات دالله دذات نه لرے لیرې.

## دخیزونو داثر مثال

اوس په دے ځان پوهه کړئ چه په دنیا کښ د خالق الله نه سوا څومره اثر کونکی خیزونه دی. داټول دالله په مخکښ داسے دی لکه دکاریګر په مخکښ دکار آلات په ظاهر کښ اثر کونکی معلومیږی او په حقیقت کښ دا اثر دالله تعالی د طرف نه دی. په دے کښ نبی دی او که ولی وی دیو دی که پری دی. او تاروی او که آسمان وی. داروی که دعاوی.

دا تسم ټول اثر کونکی دخدائے په مخکښ داسے دی لکه د لوهار په لاس کښ سنک که لوهار لاس نه حرکت ورکوی

نو دے هم هغسے کارکوی څه رنګ چه هغه غواړی کارکوی که
نه وی نو د غسے بیا هم بیکاره پراته وی۔

ډیر وظاهر بینو چه د دوی کارونه ولیدهٔ نو دوی ته ئے د
کارونو خالق ووے او سخته تکره ئے وُخوړه۔ دوی داسے نا پوهه
دی چه د بنده لاس خپے کارکوی نو دوئ وائی بنده د خپلو
کارونو خالق دے۔

او که دهٔ ته وویلے شی چه روره! دا کارونه خو د طاقت په وجه
کیږی ګوره چه بنده نا جوړه شی او طاقت ئے پاتے نشی نو دا بنده
کار ولے نشی کولے؟ په دے بانډ چه پوهه شی نو دے به اُو وائی چه
ریشتیا دے کارونو خالق خو بنده نه دے بلکه خالق ئے طاقت
دے۔

نو که بیا ورته وویلے شی چه هلکه طاقت خو هله کارکوی چه بنده
اراده اُوکړی او اراده هله کیږی چه شوق پیدا شی او شوق هله
پیدا کیږی چه د کار فائده معلومه شی۔ نو ګویا شوق علم ته محتاز دے
نو بیا د علم او د خدائے په مینځ کښ دا عقل داسے دے لکه کاریګر
او نه اوزار۔

لږ بل مثال ته اوګوری۔ تا سو به د مردان خار کانه لیدلی وی

دَ دے پہ مشین کښ پہ سوؤنو پُرزے گرځي. خو دَ تولو دَ حرکت نہ مخکښ اوَّلنے پُرزے تہ حرکت ورکړے شي نو بیا دا نور پُرزے پہ حرکت اولګي۔ او دَ دے تول حرکت نہ ګنے الاجی شروع شي دا دَ اُو سپینے بے حسہ پُرزے پخپلہ نہ خوزي بلکہ څوک دَ عقل او ارادے خاوند دیته حرکت ورکوي۔ نو دَ مشین دا کاد بہ دَ صاحبِ عقل او صاحبِ ارادے بندہ وي. دا دَ مشین کار نہ دے دَ ریل چلول دَ ریل چلوُنکي طرف تہ نسبت کیږي. کہ څوک وائي چہ کارخانہ چلیږي او ریل روان شو نو دا مجازاً ویلے شي نو دَ غسے فاعل حقیقي اللہ دے او بندہ تہ فاعل مجازاً ویلے شي۔ دَ بندہ مثال دَ هغہ پرنالے دے چہ پہ هغے کښ دَ چهت اوبہ بهیږي۔

اللہ دَ خپل طرف نہ بندہ مخکښ موجود کہ او دَ دهٔ افعالئے روستو موجود کړهٔ۔ دَ بندہ کار د نہ بہ هلہ دَ بندہ وو چہ دَ دے پخپل وجود کښ بل تہ محتاج نہ وے لکہ نُور پہ خپلہ رنړا کښ بل نُور تہ محتاج نہ دے او مزکہ آسمان پہ خپلہ رنړا کښ نُور تہ محتاج دي۔ او رڼہ رنګ چہ تیارهٔ دَ نُور خواتہ نہ شي راتلے دغسے دَ خدائے وجود ذاتي دَے دَ دهٔ څخہ عدم نیشتوالے نہ شي راتلے۔

ښهٔ یو بل مثال ته فکر اوکړئ ـ چه دَ ذات اوَ وجُود په فرق پوهه شئ. دَ مکان دَجوړونکي اوله نقشه دَ نور و نقشو نه جدا وي. دا دَ دے مکان ذات دَے او بیا چه دَ دے مکان دیوالونه وغیره جوړ شي. نو دائے وجود دَے. دا دُواړه کله یو ځائے وي او کله جُدا وي د دے ذکے آسمان او دټول مخلوق د پاره دغسے یو ذات او وجود دے دا وجود کله دَ دیر عمر نه وي او د دیر عمر به وي. او کله لنډه موده وي نو دَ دے عالم هغه اوله نقشه چه دا عالم لا پیدا نه وو. دا هغه اصلي وجود دَے چه پټ وو. او قدیم وو.

## دَ تقدیر مطلب

او دغه هغه شیز دے چه د پته تقدیر وائی. او دَ دے په مطابق دا دنیا په ظاهري عارضي وجود موجوده شوه. دَ دُنیا دَ دے ظاهري عارضي وجود او دَ اول تقدیري نقشے دا سے مثال دے لکه چه یو سړے دَ کوهي په غاړه ولاړ وي او ښکته په اُوبو کښ خپل تصویر ویني. خو په ده کښ او دهٔ په تصویر کښ څهٔ نه څهٔ فرق وي او هغه دا چه دَ دهٔ سر د لته پورته دَے او په کوهي کښ ښکته دے یا لکه دَ مُهر حروف چه اړولي جوړیږي ـ نو دا وُجود ظاهري به دَ هغه اصلي وجود مطابق هم وي او مخالف به هم وي ـ

لکه په دے دنیا کښ عاقلان خلق عاجزی ستائی او تکبر ته بد وائی
سخیان چه په سخاوت عاجزان شی دوی ته غنیان وائی او د دوی عزت
کوی. او بخیلان که ډیر مالداران وی. دوی ته مفلسان وائی. دا
شاید چه د دے مخالف اثر وی چه څومره دا عارضی وجود هغه
اصلیت نه لری کوم اصلیت چه هغه اصلی وجود لری. او څومره
عقل د دغے اصلی وجود په تلاش کښ داسے لګیا دے لکه څومره
دا ښکاره سترګے پوزه چه د دے ظاهری وجود په دریافت کښ
اخته دی. او څه رنګ چه سترګے کله لوے لیدل غواړی.
کله نزدے نو په دے وجه د دوی په لیدو کښ فرق وی.

دغسے عقل د تیز والی پس والی په وجه د اصلی وجود په باره
کښ په فرق دریافتونه کوی.

خبره ګرانه ده خو وار مه خطا کوئ ګویا د دنیا د پاره یو عارضی
وجود شهٔ چه په حواسو لیدے کیدے شی او یو دهٔ هغه مخکښے وجود
شهٔ چه د کوم دریافت عقل کوی. په دے تاسو ته دا هم
معلوم شوه چه د دنیا هغه پټ اصلی وجود الله ته د دے دنیا
د موجودیدو نه مخکښ معلوم وو.

او د دے مثال داسے شهٔ لکه نور او دهٔ شعاع او غار مهٔ

نو دا نور گویا یو مجمل شیز دے او دا شعلے او غار مے ئے تفصیل
دَے نو دغه مجمله نقشه چه دیته تقدیر وائی او دا یوه پته زره
نقشه ده. دا ثابته شوه او دا به ممکن نور هم زه صفا کرم. په
دے باندے دا خبره ثابته شوه چه دَ آسمان او دزمکے او دَ ټول
مخلوق دا وجود ونه عارضی دی. په دے وجه په دوی نشتوالے راتلے
شی. ځکه چه دَ دوی وجود عارضی دے اصلی نه دے.

## دزمکے آسمان خراب والے

بعض خلق وائی دا زمکه آسمان به نه ښریږی. دلیل دا دے چه
دا سے معلومیږی چه دوی به د غسے وی.

نو وره! دا خو څه دلیل نه دے ځمونږ دا طاقتونه دومره
قدرے دی چه دَ حال زمانے په باره کښ څه اووائی درا تلونکے زمانے
نه خبر نه دی. او دا دلته چه مونږ تر څه شیز ونه دا سے ښکاری
چه په دے کښ جدائی نه منو لکه په اور کښ گرمی او په نور کښ
بریښنا او غسے دآسمان زمکے وجود. نو دا ځمونږ دَ عقل ناپوهی
ده. تر نه گودے او به اوس یخے وے چه تا په اور کیښودے نو گرمے شوے
بیا چه گرمی تر لاره نو یخے شوے. دا گرمی. دنرا، تیاره، بقاء فنا
کوم چه دَ مخلوق لوزمات دی. دا ټول دَ مخلوق نه جدا کیدے شی

لکہ پہ نیتولو مذھبو نوکښ داسے واقعات شته چه یو نیک بندهٔ اُود
نهٔ اُوغورزیدهٔ ۔ اوهغه اُور ورته یخ شو ۔ نو دا اُورسره گرمی مونږ
الګړو یو ۔ ځکه مونږ وایو چه دا اُور نه جدا کیږی ۔ حال دا دے
چه دا جُدا کیدهٔ ممکن دی ۔

ته نه گورے کته پر تردهٔ ۔ دلاس په زور بره لاړه ۔ اُو بهٔ یخے وے
په نُوریا په اُورگرمے شوے ۔ نو دَ ځیز و نو دا بعضے بعضے خاصیتونه
اتفاقی دی ۔ او دا ځکه که څوک تپوس اوکړی چه هلکه دا اُور ولے
گرم دے ؟ نو دَدے به صرف دا جواب وی چه خدائے گرم کریدے
نو بس دیته اتفاقی خاصیت وائی دا یو ځائے والے بے سببه شویدے
او دا قسم یو ځائے والے جُدا کیدے شی ۔

دغسے آسمان او ددهٔ دَ دیرے مُودے نه موجود والے اتفاقی دے
او دا اتفاقی یو ځائے والے جُدا کیدے شی ۔ لکه چه قرآن دَدے ځائے
په ځائے بیان کړے دے ۔

## دَ قیامت قائیدهٔ

گورئ څه رنګ چه انسان دَ مختلفو عنصرو نو نه جوړ دے په
دیوجه دَدے کله جوړ وی او کله نا جوړه شی او کله چه مرض زیات
شی نو مړ شی ۔ دغسے دا زمکه آسمان دریابونه اور اُوبه نُور سپوږمئ

او د دوئ اثرات تول جُدا جُدا دی ۔ څه رنګ چه د دوی شکلونه
او رنګونه جُدا دی د غسے د دوی ګرمی سرړی جُدا جُدا ده ۔ او دا
معجون مرکب په دے درجه کښ دی چه د دے علم بندهٔ ته نه شی
حاصلیدے ۔

د غه وجه ده چه د نجوم علم درو غژن دے ۔ د تولو ستورو په
اثراتو باندے بنده نه شی عالم کیدے او دے که څه وائی نو په هغے
کښ په سلو کښ یو دوه که رشتیا وی ۔ نو دا نور خالص دروغ وی
دا ځکه چه په نجوم کښ په تولو ستورو او د دوی په اثراتو پوهیدل
ګران دی ۔ او که کله کله اتفاقاً یوه خبره دوه صحیح هم شی نو دا
د اعتبار خبره نه ده ۔ دا قسم خلق هسے ځان ګروی ۔ ځکه شریعت
دا علم زده کول منع کړے دی ۔

نو خبره م دا کوله چه دا عالَم د مختلفو څیزونو نه جوړ دے ۔ او
دا څیزونه به ضرور خرابیږی ۔ ځکه چه په دے کښ به څه څیزونه
غالب کیږی او څه به مغلوب کیږی ۔ لکه په بنده چه تبه د ګرمئ
د زیاتی په وجه راغله ۔ یرسوب د هوا د زیاتی په وجه راغے ۔ نو
هر کله چه د بنده د څلورو مخالفو څیزونو دا حال دے نو د دُنیا
د بے شماره څیزونو حال خو به د دیند زیات خراب وی ۔ تر نه ګورے

کله بارانونه ډیر وی - او کله سوکړه وی - کله فصلونه ښه کیږی
او کله ملک ښار وی - دا هر څه د دنیا د ناجوړتیا په وجه کیږی
ولے مونږ په دے نه پوهیږو - په دے به د دے عالم روح پوهیږی
اوس راځئ چه د عالم په روح بحث اوکړو۔

## د دے عالم روح

مونږ د ژوندون دا سے تعریف کوُو چه د هغے په وجه مونږ ته
د انسان نه سوا بل څوک ژوندے نه ښکاری مونږ وایو چه ژوندے
دیته وائی چه ساکانے اخلی او په خپله اراده حرکت کوی حالے
دا دے چه ژوندون خو ,, پیژندلو ،، او ,, پوهیدلو ،، ته وائی - دا
صحیح ده چه د انسان او حیوان د ژوند د پاره تر ژوندون پورے
ساه اخستل ضروری دی - خو هر ونه ساکانے هم نه اخلی
پاتے په خپله اراده حرکت کول شو - نو دا به څوک ثابته نه کړی
چه ګنے زمکه - هوا - ونے - غرونه پخپله حرکت نه شی کولے ډیر
نه ډیر دا به اُووائی چه مونږ د وی په حرکت کولو نه دی لیدلی - نو
څمونږ نه لیدل خو څه دلیل نه دے - مونږ ډیر څیزونه مخلښ
نه ؤ ولیدلی او هغه اوس موجود شو۔

نو کوم صحیح خبر ونه چه د پیغمبرانو ، صالحانو د پاره وئیلی شوی

دی۔ چه کانړی و رته گویاشو۔ او و لئ و ر له په بلنه راغلے۔ داهر گز
څه ناممکنه خبره نه ده۔

پاتې شو دَ دے دلیل چه ښنه ته ئې په کوم دلیل ژ وندے ثابتوے؟
نو وادرئ تاسو ته دَ مخکښی نه دا ثابته شوے ده چه دَ دے عالم دَ هر
څیز وجود او دَ دهٔ ذات جُدا جُدا دی او دا وجود هم یو دا ظاهری
دے او بل باطنی دے۔ دَ هر څیز دَ باطنی وجود تعلق دَ خُدائے سره
دا سے دَے لکه دَ پلوشو تعلق دَ نُور سره او دَ ده دا ظاهری وجود
دا سے دے لکه په مزکه غارمه چه کله ځی او کله راځی دا ظاهری وجود
کله وی او کله نه وی۔ مگر باطنی وجود ئې دا سے هر وخت موجود وی
لکه پلوشے چه دَ نور سره هر وخت لگیا لے وی او دَ ده نه نه جُدا کیږی
اوس په دے ځان پوهه کړئ چه دَ نُور نه اول پلوشے پیدا شوے
او بیا په زمکه غارمه ښکاره شو۔ نو دَ نُور گرمی او رڼا به اول اول پلوشو
ته رسی۔ او دلته به دا دوارهٔ اشو ونه دیر نه دیر وی۔ او په غرمو کښی به
دَ دینه دیر کم وی۔

دغسے به دَ عالم دَ څیز ونو په وجودِ باطنی او ظاهری کښی فرق وی
دا ظاهری وجود دَ باطنی وجود سورے دے۔ نو دَ خدائے فیض به
اول اول او هیو نه دیر په باطنی وجود پریوزی نو بیا به ظاهری وجود

ته څه لږ لږ را رسي - پس دا نو شي کيدے چه دَ اِنسان او حيوان دا ظاهري وجود دِ دَ خدائے په فيض باندے ژوندے وي - او دَ نورو څيزونو باطني وجود دِ ژوندے نه وي - خدائے خو دَ کمال خاوند دے دَ هغهٔ فيض په هر چا باندِ کيږي - نو دا به څرنګ او منلے شي چه ژوندون دِ يوازے انسان او حيوان کښ وي او په کته - ونه او نورو څيزونو کښ دِ نه وي -

زهٔ دا منم چه دَ هغه فيض به په مناسب مناسب وي او دَ قابليت په برابر به وي لکه نُور په آئينه - کته او خښته تو لو دَ ښرا غور زوي خو وي دَ دينه پخپل مناسب فائده اخلي نو که دا سے وي چه دَ انسان ژوندون دَ حيوان نه زيات وي او په دے وجه دَے قسما قسم کمالات کوي - دغسے دَ حيوانا تو ژوند دَ ونو نه زيات وي او دَ ونو ژوند دَ کتو نه زيات وي نو دا دَ منلو خبره ده چه نه کودے دَ ونے څانګه چه بره خيژي او دَ دے مخے ته يو ديوال دا شي نو دا دَ دينه سنګ او کړي او خپل رفتار بره جاري او ساتي -

نو خلاصه دا شوه چه ژوندون په ټول عالم کښ دے خو په چا کښ زيات ښکاري او په چا کښ کم ښکاري او څوک پکښ مړه غوندِ ښکاري - دا ګته چه مونږ ته مړه ښکاري دا چه بره ګذارشي

نو دا بیا سنګه څوک راولی؟ دا مقناطیس نه چه اوسپنه راځی نو دا څوک راولی؟ شاید چه ته داووایئے چه داګټه خو زمکه راکا بڑی او دا اوسپنه خو مقناطیس راکا بڑی نو بیا به ته د دے جواب هم اوکړے چه په دے زمکه او مقناطیس کښ دا پوهه څه دنګ راغله؟ چه ګټه خوځان ته راکا بڑی او اوږنه راکا بڑی۔ او دا مقناطیس یوازے اوسپنه څه رنګ راکا بڑی او بل څه څیز نه راکا بڑی۔ او که نه وایئے چه دوی پرے پوهیږی نه۔ دا ددوی طبعی کار دے نو دا خبره د منلو نه ده داخو د تمیز او پوهے کار دے۔ د دے د پاره به په دے کښ خواه مخواه تمیز او شعور منے۔

نو د دینه دا ثابته شوه چه په دے ټولو څیزونو کښ روح شته او ددوی دا کار د و نه خپله اراده کوی۔

او دا کوم صحیح روایتونو کښ چه د ګټو او ونو تله راتله او خبرے اترے راغلے دی دا ناممکنے خبرے نه دی۔

ته لږ د دینه فکر اوکړه چه د ماشی څومره وړوکے خوله او ژبه ده او چه غوږ ته نزدے شی نو څومره شور کوی؟ د غسے که ګټه په خپله ژبه خبرے اوکړی کوم چه مونږ نه وینو نو څه بعیده ده؟

بله خبره داده چه د ویلو نه مطلب د ذرهٔ خبره ښکاره کول دی۔

مونږ دَ ژبے نه علاوه په خط او کتابت د اکار کوو ـ لوکه دَ کمتواو ونو
دَ پاره د غسے څه بله دَ وینا طریقه وی چه مونږ تر خبر نه یو ـ
لو دا دِ ولے منع وی؟ تا سود ے میږوته اوکورئ چه دَ خوراك څۀ
بیامومی لو په لور وسیږو لیسے لارشی ادھغوئ ته پخپله ژبه څه ووائی
او په دے خوراك حمله اوکړی. دا وینا که په آواز سره وی نو دا به
ډیر نرے آواز وی چه مونږ ئے نه اورو ـ خو دَ بل میږی دا وریدل
طاقت څمونږ نه زیات دَ ے هغۀ وا وریدۀ او پوهه شۀ ـ

دغسے که خدائے تعالیٰ په بنی آدمو کښ دا سے څوک پیدا کړۀ چه
دهغوی دَ اوریدو طاقت څمونږ نه زیات وی نو څه عجیبه ده؟

نو دا ثابته شوه چه دَ دُنیا په ټولو موجوداتو کښ روح شته
او څه رنګ چه په یو یو اندام کښ روح شته او په ټول بنی آدم کښ
روح دے دغسے دَ عالم په هر هر څیز کښ هم روح دے ـ دعالم روح شته
دَ عالم دَ څیزونو دَ نا جوړتیا پته لګیدے شی ـ او مونږ چه دَ عالم یو
اندام قدرے یو ـ په دے نه پوهیږو چه نن دعالم دَ صحت او مرض
کومه درجه ده؟

# دَ زمانے ځوانی بدهاوالے او مرګ

دَ تاریخ نه دا سے معلومیږی چه دا کوم فساد او بیماری چه نن ورځے

دی. دا مخکښ کلے دے او اوس دومره زیاتے شوے چه نا قابلِ علاج دی. دَ دینه دا معلومیږی چه مخکښ زمانه ځوانه وه. او اوسنئ زمانه بوډئ ده. اول دَ دے طاقت زیات وو. دَ مرضونو مقابله ئے کولے شوه او اوس ئے طاقت کم دے دَ مقابلے طاقت نه لری او که دغه حال دا سے جاری پاتے شهٔ نو یوه ورځ به دا عالم دَ مرګ کوټ او ځنبی او څه رنګ چه مونږ مړهٔ شو او ځمونږ وجود ذرے ذرے شی. دغسے به دَ دے عالم دَ او وجود هم درے ورے شی دَ پره ده چه کلک اجزا لکه غرونه به ځمونږ دَ هډوکو هسے دوستو خوا ب شی او نرم څیزونه به لکه ځمونږ دَ غوښے ذر ذر خراب شی. نو ګویا دا ټوله زمکه او آسمانونه دَ خرابیدو طرف ته روان دی.

## دَ عالم دَ څیزو نو جُدائی

خو پر دے کښ دا خبره یاده او سائئ چه دا دنیا او دَ دے ټول څیزونه دَ جُدا جُدا فائدو دَ پاره جوړ شوی وو. نو چه دا ټوله دنیا کمال ته اُ ورسی او لکه دَ فصل پخه شی. نو بیا دَ دے دا اجزاوُنه به دَ هغے دَ مناسب کارا خستے شی.

زمیندار چه فصل غوبل کړی نو بُوس ئے دَ څاروو په کار دا وُلی او غنم دَ بنی آدمو دَ خوراک دَ پاره جمع کړی. که زمیندار دا جُدائی

اونکړی نو دے زمیندار ته به خلق کم عقل ووائی. دا غنم چه دودئ ترې جوړه شی دا بیا په غانبونو کښې ئے ذرے ذرے کړے او معدے ته ئے حواله کړے. معده بیا دا په قسم قسم غلبیلونو کښې چانړ کړی او په مختلفو اندامونو کښې ئے تقسیم کړی دے کار ته هیڅوک نا کاره کار نه وائی. دغسے دا عالم د مختلفو څیزونو نه جوړ دے زمکه، هوا، اوبه اور. دا ټول د یو بل نه جُدا کار لری.

د انسان د خوراك نه یو روح پیدا شی چه هغے ته روح هوائی وائی. کله کله چه خوراك سخت وی. نو دا روح هوائی په دے نا جوړه شی. خو که بنده ښه کار و نه یا نا کاره کار و نه کوی نو دا روح هوائی په دے نه پوهیږی. د دے د پاره یو بل روح پکار دے چه هغه د روح هوائی نه ډیر نازك او پاك وی. په دے روح ځمونږ پوهه کرانه ده. خوشته ضرور.

مونږ په دے هم نه پوهیږو چه د غذا نه دا خلاصه څه رنګ په چانړ حاصله شوه. نو د هغے روح په حال به څه پوهه شو چه هغه ډیر نازك او لطیف دے.

دا روح انسانی څمونږ د خوراکونو نه معلومه وو. دا روح په کته کښې هم شته په ونه کښې هم شته خو دومره ده چه کومه خوبی

دانسان په روح کښ شته دے. هغه دَ حیوانا تو په روح کښ نشته ځکه چه دَانسان خوراکونه اعلی دی او دَاعلیٰ خوراکو نو خلاصه هم اعلیٰ وی۔

دغسے دَ حیوانا تو روح هوائی دَ ونو نه او دَونو روح هوائی دَ کټونه اعلی ده. نو خدائے به ښو له ښهٔ ورکوی او بدو ته به بد ورکوی۔ نو کوم چه ټول تال ښهٔ وی هغوی ته به ښهٔ ښهٔ ورکیدے شی او کوم څیزونه چه څهٔ ښهٔ او څهٔ بد نه جوړوی دَ هغوئی به جدائی کیږی. ښهٔ اجزا به ښهٔ ځائے ته ځی او بد څیزونه به بد ځائے ته ځی۔

# جنّت او دوزخ

نو راځئ چه اوس پردے دنیا نظر واچوو. دَ دنیا څیزونه نه ټول ښهٔ دی. او نه ټول بد دی. څه پکښ ښهٔ دی او څهٔ پکښ بد دی نو خدائے چه دا دُنیا وراندو بیچاره کړی نو دَ دے ښهٔ به دا سے مقام ته اورسوی چه هلته به هیڅ قسم تکلیف نه وی. او شاید چه دَ دے ځائے نوم جنت وی ؎

بهشت آنجا که آزارے نباشد
کسے را با کسے کارے نباشد

اونا کاره به داسے ځائے ته اوسوی چه هلته به د آرام نوم هم نه وی
او دا به د دوزخ وی. نوځه رنګ چه زمیندار بوس ځادوو ته ورکړه
چه هغه یو معمولی مخلوق وو. دغسے بدان خدائے دوزخ ته بوتلۀ
او غنم انسان او خوارهٔ ځکه چه دا ښهٔ مخلوق وو. نو دغسے نیکان
به جنت ته لاړشی.

دا تقسیم او هر څوک خپل خپل مقام ته رسول عدل دے
هر څوک د خپلو مرتبو په برابر خپلو خپلو ځایو نو ته رسول د خدائے
په قدرت کښ دی بل څوک په دے نه پوهیږی.

د خدائے په ذات او صفات کښ نقصان نشته. په دے
وجه خدائے هر څوک خپل مقام ته اورسول په خدائے څوک
غالب نشته چه د خدائے په دے عدل کښ فرق راولی خو
اوس ځان په دے پوهه کړئ چه

## حمونږ عقل او نیکی بدی

ښه دالے او بد دانے معلومول ډیر ګران کار دے عقل په دے
کله کله قدم بدوی خودائے هم داسے پوره اندازه نشی خولے
هسے اندازه قدرے ښکاره کوی او عقل ته غچے غچے خبرے څه
قدرے معلومیږی د باد یا د نیکو بد د خو په پته هم نه پوهیږی

د اپوره علم صرف الله ته حاصل دے - د اعقل د دغے در واز ے
خیراتی دے - عقل د فتری غونده دے دے څهٔ قدر ے د هر
څهٔ نه خبر وی خو پوره په پته نه پوهیږی - ډیر کذ ادے دے
غریب دا سے غلطے وینا کاتے او کړی لکه کوږ سترګے سرے چه
یوَه دوه اُوائی یا ډیری مریض چه هر څیز تر زیږ وائی - اد دا
خبره خو عقل ته ډیره ګرانه وی چه دَ نیکانو دَ نیکو په مینځ کښ دَ
مرتبو اندازه اولګولے شی -

په تاسو بانډِ خبره اُوږده شوه خو خبره ګرانه ده نو اوس ئے
خلاصه واوری چه خدائے به دَدے عالم دَ ښهٔ او بد وجدائی
کوی لکه زمیندار چه بُوس او غنم جدا کوی - خدائے به نیکان
خپل مناسب مقام ته رسوی او بدان به خپل مناسب مقام ته
رسوی - چه اول ته جنت او دویم ته دوزخ وائی لکه زمیندار چه
دَ بوسو نه بوساره جوړه کړه او غنم ئے کندو ته اورسول - تاسو
هره ورځ داوینئ چه هر څیز خپل خپل مقام ته ځی - کنه بره
پر ته وی خو چه مانع لرے شی نو ښکته را ځی - اُور چه بند وی نو
بند وی خو چه خلاص شی نو بره ځی - دا سے دا دُنیا چه دَ نیکو
او بدو نه جوړه ده دا هم چه جُدا شی نو ښکاره دی چه خپل خپل

مقام تہ اُورسی۔

# جنت او دوزخ ۔ شیطانان او ملائکے

شیطانان او ملائکے واقعی موجود خیز ونہ دی. داځکہ چہ هر انسان یو وخت نیکئ تہ شوق لری او بل وخت بدی خوښوی او ښتیا خو دادہ چہ دے خو هر وخت دوارہ کول غواړی۔ ځکہ چہ بدی کوی نو عقل ئے منع کوی او چہ نیکی کوی نو نفسانی خواهش پکښ مانع وی۔ نو څہ رنګ چہ انسان دَ څلور عنصرونو نہ جوړ دے۔ دغسے معلومیږی چہ څوښ دا ځان د دوو مخالفو خیزونو نہ جوړ دَے چہ یو هر وخت نیکی غواړی۔ او دویم هر وخت بدی غواړی لکہ پہ انسان کښ کلہ کومی زیاتہ شی خوسرړی پکښ موجودہ وی۔ دغسے پہ بنی آدم کښ دَ نیکئ بدئ تفاوت وی کہ نیکی کوی نو دَ بدئ مادہ پکښ وی او کہ بدی کوی نو دَ نیکئ مادہ پکښ وی۔

مسلمانان دَ نیکئ غوښتونکی تہ روح او دبدئ غوښتونکی تہ نفس وائی۔

نو هر کلہ چہ دَ هر خیز دَپارہ یو اصلی مقام پکار دَے نو داسے معلومیږی چہ دا روح دَملائکو دَ طبقے نہ دَے کوم چہ

بالکل چرے بدی نہ کوی۔ اوداکوم نفس چہ دبدئ شوق لری۔ دادشیطانانو دطبقے نہ دے حُکہ چہ شیاطین چرے نیکی نہ کوی۔

څمونږ په وجودکښں څمونږ تولو عنصرونو ته دخپلو۔ اور اوبو۔ هوا۔ اوزمکے دکرونہ امداد رسی۔ نو دغسے دنیکیٔ دپاره امداد دملائکو نہ رسی۔ اودبدئ دپاره دشیطانانو نہ رسی۔

اوکہ تہ وایئے چہ مونږ خو ملائکے اوشیطانان نہ وینو نو څمونږ نہ لیدهٔ خو څۀ دلیل دنشتوالی نہ دے۔ مونږ هوا نہ وینو اودَدے وجود دَاثر په وجہ منو۔ دغسے به ملائکے اوشیاطین داثر په وجہ منو۔

بل په دے ځان پوهه کړئ چہ ددے دُنیا تول لذتونہ د تکلیف سره اخلی دی اودغسے تول تکلیفونہ د څه قدرے آرام اسباب دی۔ او په هره ګټه کښں نقصان او په هر نقصان کښں ضرور څه نہ څۀ ګټه وی۔

نو خدائے به په دے کښں هم جدائی کوی حُکہ چہ لذت د نیکئ قسم دے او رنځ دبدئ قسم دے۔ نو هر یو به خپل خپل مقام جنت او دوزخ تہ اورسی۔ نو ګو یا د دنیا هر قسم لذتونہ اګرچہ

دَ بنځو سره کوروالے دے داد پہ جنت کښ وی بلکہ کہ دَ دینہ پکښ دَ طاقت دَ زیاتوالی پہ وجہ زیاتے وی نو څۀ بدہ خبرہ نہ دہ۔ دغسے پہ دوزخ کښ دِ ھر قسم دَ دُنیا تکلیفونہ وی بلکہ دَ دے نہ دِ ډیر وی۔ او دَ جنت د وزخ لذتونہ او تکلیفونہ دِ دَ دُنیا دَ لذتونو او تکلیفونو پہ نسبت ډیر زیات وی۔ ځکہ چہ ھلتہ بہ لذتونہ خالص لذتونہ وی او تکلیفونہ بہ خالص تکلیفونہ وی۔

بھرحال تاسو تہ دا ثابتہ شوہ چہ قیامت دَ کوم ھنګامے نوم دے۔ ھغہ صحیح خبرہ دہ۔ او جنت او دوزخ چہ کوم ځائے تہ وائی ھغہ درست دی۔

او دَ دے نہ دا ھم ثابتہ شوہ چہ دا دنیا ھمیشہ دَ پاتے ندہ او نہ دا دنیا دَ جزا سزا دَ پارہ کافی کر زیدے شی پہ دے وجہ د ھندوانو د تناسخ او اکون مسئلہ ځان لہ باطلہ شوہ۔

## دَ تقدیر مسئلہ

تاسو تہ دا ھم معلومہ شوہ چہ خدائے یو دَے او دا ټول کائنات دَ خدائے مخلوق دَے۔ او دَ قیامت پہ غرض ھم پوھہ شوے چہ پہ دے کښ بہ نیک او بد جدا شی۔ او دَ بنی آدم نیکی

اوبدی په نیکو اوبدو عملونو موقوف ده. او د انسان یو معجون مرکب دے چه د یو څو مفرداتو نه جوړ دے. اول ئے عقل دے چه دا د دهٔ لوئے جز دے دویم شوق او ویره ده. دریم اراده او اختیار دے څلورم قدرت او طاقت دے. دالاس. خپے سترګے پوزه وغیره پنځم دی. دا پنځه واړه څیزونه په هر انسان کښ لږ یا زیات موجود دی.

۱ او د عقل نه مطلب د ښهٔ او بد تمیز کول دی.

۲ او د شوق نه مطلب د ارادے پوره کول دی.

۳ او د ویرے نه مطلب د ناکاره کار نه اراده اړول دی:

۴ او د ارادے نه مطلب د قوت نه کار اخستل دی.

۵ او د قوت نه مطلب د لاسو خپو نه بیکار اخستل دی. د دے آخری څلور واړو نوم قوتِ عمل دے. او اول ګویا عقل دے نو د عقل او د قوت عمل تعلق د حاکم او د محکوم دے. خالقِ عالم الله تعالیٰ عقل حاکم کړیدے او قوتِ عمل د دهٔ محکوم دے اوس که چا خواهش د عقل نه خلاف اوکړو نو هغه نبیاران والئ چه عقل کمزورے شو او دا ډیره نقصانی خبره او شوه خو عقل بیا هم حاکم دے.

هر کله چه په عقل د کار د نیک او د بد تمیز کول دی نو
اول به نیک او بد موجود وی. نو هله به عقل د دے تمیز
کوی. او قوهٔ عمل به د دهٔ تابعداری کوی. د اقوهٔ عمل د
عقل په مخکښ د کاتب د قلم هسے شو. قلم که څه کوی نو د دے
فائدهٔ دهٔ ته نه رسی بلکه د دے فائده نقصان به کاتب ته رسی. نو
قوهٔ عمل هر څهٔ د عقل د پاره کوی او قوهٔ عمل هر څهٔ د
عقل په اشاره کوی. او د دنیا څیزونه داسے دی چه یو کار که
د یو د پاره ښه وی نو د بل د پاره به بد وی ښه طرف ته رغبت
وی او د بد نه نفرت وی لکه اُوبهٔ ډوډئ د حیواناتو مرغوب
څیزونه دی او د کنډ گئ نه هر څوک نفرت کوی.

د لنډ عقل دا سوالونه پوده کوی چه دا په اعمالوکښ نیک
او بد ولے وی؟ د دے نیکئ بدئ په جوړ ولوکښ څهٔ غرض وو؟
نو ول به ئے ښهٔ جوړ کړی وُو چه په دے جدائی کښ ئے څهٔ حکمت
وو؟

نو گوری دا کارخانهٔ عالم ده. د دے حکیم خدائے دے ـ
هر کله چه زهٔ او تهٔ بے غرضه او بے فائدے کار نه کوو. دهغه به
کله او کړی؟ موښ نو ول د خدائے په مخکښ د کوډا گئ هسے یو

الله د بادشاه نه د بادشاه کار اخلی او د وزیر نه د وزیر کار اخلی. هغه داهم کولے شی چه نن دا بادشاه وزیر کړی او د وزیر نه بادشاه جوړ کړی. او په مونږ کښې د یو تن هم دا طاقت نشته چه په خدائے دا اعتراض اوکړو چه زهٔ دِ ولے غریب کړے یم!. زهٔ به دِ بادشاه کړے وُوم. ځکه چه بادشاه خو یو وی که ټول خلق باچایان شی. نو رعیت به ئے څوک وی؟

نو څرنګ چه مونږ د ګډ اګئ په خاوند دا اعتراض نه شو کولے چه زه ولے د دنګ ولاړ یم او دا ولے ګډ اګے دے. دغسے د مخلوق کله دا طاقت کیدے شی چه په خالق اعتراض اوکړی چه زهٔ دِ ولے نا کاره کړم او دے دِ ولے ښه کړ.

نو څه رنګ چه په کارخانه ئے سلطنت کښې مختلف قسم خلق پکار دی چه یو دِ بادشاه وی څوک دِ وزیران وی څوک دِ نوجوانان وی او څوک دِ عام رعایا وی. نو دغسے د خدائے په خدائی کښې هم زنګارنګ خلق پکار دے څوک دِ نیک وی او څوک دِ بد وی.

اوګوری دا نیکی او بدی مونږ ته د خدائے څخه دا ټول یوشان دی تا سو اوګورئ مونږ وایو دا تنې ده. دا دیران دے او دا شاهی محل دے. او نو ده ته دا ټول یوشان دی. نور

په تولو يوشان رنړا غورزوی . اودا بد که بد دی نوځان له بد دی نور عالم ته خودا سے دی لکه دَمعشوق په مخ تور خال او تورے زلفے . ددی ځان ته ناکاره دی خو دوی د معشوق د ښائست ذريعه دی نو په دے وجه اوس که مونږ څه ښه کار اوکړو نو دَخدائے شکر داوباسو . او که بد کار درانه اوشی نو بس چُپ چاپ دِ شو غږ دِ نه کوو ځکه چه مونږ هُم دَخدائے يُو او ځمونږ دا ښهٔ بد کارونه هم دَخدائے دی مونږ ځے دَ ناکاره کارونو مناسب اوګڼړلو نو ناکاره کارونه ځے رانه اوکړهٔ .

تاسو چه يو مکان جوړ دَیٔ نو يو ځائے دَ ښتیٔ دَپاره بل ځائے دَ غسل خانے دَپاره او بل دَ خپلے ناستے ملاستے دَپاره خوښ کړیٔ نو دے ځايو نو کوم ناکاره کار کړے وو چه د ښتیٔ او غسلخانه شو او دا بل دَخوراك او ناستے ملاستے ځائے شهٔ . نو بس مونږ ته دايره پکار ده چه هسے نه مونږ لکه دلويو بولو چه اودیږ بليږی په دوزخ کښ او غورزيږ د .

ګوری د اخلق ولے سپیا کے په اودکښ سوزوی! ځ ددی دغه پليتوالے ګناه دَے نو دَ ناکاره سزا خو دَ ناکارو مناسب وی . که مونږ دغسے اویريږو چه د به خير ! مونږ دَعذاب نه بچ کړے نو هيڅ

کراند او عجیبه نه ده چه لکه د دیران د سرے په باغ کښ واچولے
شو او ځمونږ نه ګلاب او مالتے پیدا شی. او ځمونږ د ناکاره کادونو نه
ښۀ کارونه پیدا شی

تاسو په دے مه حیرانیږئ. ګورئ کله کله یو غل داګیرشی. ځو ځ
تورکړے شی او خلق ورپسے چغے وهی. په دے کښ غل فیصله اوکړی
چه ربه! که د الله از خلاص شوم نو ځما دِ بیا توبه وی او زۀ به بیا
نیکی کوم. او واقعی چه خلاص شی نو نیکی شروع کړی. نو تاسو اولیدۀ
چه د غلا نه چه بدی ده نیکی پیدا شوه.

خلاصه دا ده هر کله چه مونږ ځان بے وسه او بے اختیاره اوګڼو
او هر وخت د یرے نه رپیږو او وایو چه مونږ خو د لوئ با اختیاره
ذات په قبضه کښ یو. ګورئ چه څه به را پیښیږی؟ او چه په څۀ
کار مو لګوی؟ مونږ خو قیدیان یو چه میچن را باندِ اوړوی که د دے
را باندِ بنړوی په دے ویره کښ به دے د آرزو ګانے او سوالونه
کوی چه خُدایه! ته ځمونږ نه ښه کارو واخلے او د ناکاره کار نه مو بچ
کړے. په دے به د دۀ ښۀ کار ته رغبت پیدا کیږی او د دے نه
به اراده پیدا کیږی او اراده به د الله امونو قوت ته حرکت ورکوی
نو تاسو اولیدۀ چه د یرے نه آرزو پیدا شوه او د آرزو نه اراده

پیدا شوه او دَ اِرادے نه قدرت پیدا شهٔ .او دَ قدرت نه کاراو شهٔ
تا سوکه یوے کاد خانے ته لاړشئ نو او به گورئ چه یوه پُرزه بله
پُرزه خوزَوِی نو دے چه په آخرکښ یوه پُرزه وی چه دَ هغې نه دکارخانې
مهتمم دَ خپل مطلب کار اخلی

نو دَ بنی آدم دا لاس خپے دَ دے کودام آخری پُرزے دی او دَ دے
کارخانے مهتمم الله پاك دَ ے - دا څوك چه الله دَ خیر و شر خالق
نه منی ددی عاجزان په پوره خبره پوهـ نه دی - نو تا سو به پوهـ
شوی یئ چه سپیا کے داُوریلولو دَ پاره وی -او عطر په بنا ئسته جامو
لګولے شی. دغسے دَ نا کاره کارونو انجام به نا کاره وی او دَ ښهٔ
کارونو آخر به ښهٔ وی .

اوکه نه او ایئ چه یره خو بنده هله کوی چه په ښهٔ بد پوهیږی
او دَ دے دَ انجام نه خبروی. او چه بنده هم و نیکی بدی نه منی
نو دے به څهٔ او یریږی ؟

نو دَ دے جواب دا دَ ے چه انسان ته اوسه پورے څه کارو نه
ښهٔ ګڼړی او څه بد ګڼړی . اوکه څهٔ اختلاف دے نو هغه په
تفصیلا نو کښ دَ ے او دَ دے فیصله به څکښ الله کوی نو دا دنیا
غلطه ده چه ښه او بد دنیا کښ نشته تاسو چه دَ دنیا خیزونو ته

او کوري نو ضرور به دا او مني چه غو امیبنه هغه بنځه ده چه ډیر پئ کوي - ترڅو هغه بنځه ده چه بنځه توکل کوي - آس هغه بنځه دے چه بنځه زغلیدل کوي او چه دا پکښ نروي نو هغه نا کاره وي - خودمره ده چه څوښ دا عقل دا سے دے لکه د بادشاه قاضي یا مفتي - دے به فیصلے کوي خو دے به مختار کل نه وي - د دے خود خدائے د لیکلو فیصلو په باره کښ خلقو ته خبر ورکونکے دے - د دے ځان ته دومره طاقت نه لري چه د هر یو نیک او بد جدائي دِ او کړي -

او رشتیا خو دا ده چه دا خو روحاني فیصلے دي د دے د باره د ډیر لوي قوت او حکمت ضرورت دے - د دے روحاني حکیمانو نوم پیغمبران کیښودے شي -

## د پیغمبرانو علیهم السلام مرتبه

دوي چه کومه نسخه تجویز کړے ده په دے کښ چا ته د کمي زیاتي کولو حق نشته لکه یو - ایم - بي - بي - ایس - ډاکټر یوه نسخه تجویز کړي نو کمپوډر به څه رنګ په هغے کښ کمے زیاتے او کړي؟ ګویا د بدعتونو کول د خود نبي صلی الله علیه وسلم په نسخه کښ کمے زیاتے دے -

البته که د نسخے مرکب او مفردا خوے شي او بیا که څوک هغه مفردات راغونډ کړي - او نسخه تړ جوړه کړي نو دا سنن دي او جائز دي -

د روحانی طبیب نسخے لیکل هم بده خبره نه ده بلکه دا ډیر د
محبت ننښه ده لکه احادیث د پیغمبر صلے الله علیه وسلم شو۔
نو تا سو به پوهه شوي یئ چه عقل او قوتِ عمل دا سے تړلی
دی چه د دینه کله د فائدے کار کیږی او کله د نقصان دا معلول
چه دا کار ښه دے او دا کار بد دے دیته روحانی طب وائی

## عقل او نقل

په انسانی کارخانه کښ حاکم او قوتِ عمل محکوم دے دا عقل
به د مرغوبو څیزونو طرف ته شوق کوی او د نفرت او ضرری څیزونو
نه به ویره کوی. خو عقل عاجز توول مرغوب او د نفرت څیزونه
پوره دریافت کولے نشی. په دے وجه د دهٔ سره د امداد او ددهٔ
د رهنما ضرورت پیدا شهٔ۔
کوم یو روح موښږ سره د نزدے والی نه وینو نو د دهٔ مرغوبات
او د دهٔ د ضرر څیزونه به کله او پیژنو؟
د بنی آدم دا وجود چه اکثر جوړ او کله کله ناجوړه وی. د دهٔ
په جوړ ناجوړه پوهیدهٔ گران دی. نو روح چه اکثر ناجوړه او کله
کله جوړ دی د دهٔ په فائده نقصان پوهیدهٔ خو ډیر گران دی
تاسو دے زمانے ته او گورئ څومره د غنتو غنتو نیکو خبرو نه پکښ

خلاف کیږی. داخو په روحانی ناجوړتیاګانو کښې لوئې ذکر دے او ډیر خلق چه پیدائشی توناجوړه وی او دَ ډاکټر نه هډو دَمسره ښه کار نه کیږی.

بل بعض وبائی مرضونه دی لکه حسد بخل تکبر. خودستائی په غمونو او ښادو کښې صفا ناکاره کارونه. داغمونه معمول دی مونږ دا ناکاره. ناروا او بد ګڼړو. ولے عام و خاص پکښې اخته دی.

دَ مے ګډ ول. دَ مے جوړیدل. مجراګانې کیدل. شراب خوری بے پردے دَ ښځو ګرځیدل. دا ټے ښکاره ناکاره کارونه دی چه کوټکے هم بد ګڼړی او په کولو ئے اخته دی.

دَ غسے مختلف زمانه کښې قسم قسم مرضونه وو. نو الله تعالی دَ هرے زمانے دَپاره دَ هغوئ دَ مناسب مرضونو لرے کولو دَپاره دَ عقل دَ راهنمائی دَپاره پیغمبران علیهم السلام رالیږل. او هغوئ د وئ نه مختلف قسم معجونونه ورکړه او چا چه دَ دوی علاج اومانه جوړ شو او باقی مریضان خلق په اوږدونو. او نوروعذابونو کښې سپک سپور او هلاک شو. خبره اوږده شوه. خو مطلب دے چه دَ ښه او بد وعملونو

تمیز یوازے عقل نۂ گران دَے ځکہ چہ دَدۂ دَامداد دَپارہ دَ
خالق دَطرف نہ امداد پکار دَے نو هغه امداد ورتہ وخت
پہ وخت راغلے دے۔

## دَعملونو ښۀ والے ناکاروالے

څلور داسے اخلاق دی چہ دَدے پہ ښۀ والی باندے عام
او خاص داسے متفق دی لکہ دَ ورځے پہ رنړا او دَ شپے پہ تیارۂ
چہ دَ دنیا اتفاق دے۔

اوّل عدل دَے دا هرچا تہ دَهغۀ حقوق ورکول دی۔

دویم احسان دَے دا دَمخلوقِ خدا سرہ ښۀ کول دی

دریم متانت دَے دا سپک سپور او بے فائدے کارونہ نۂ کول دی

څلورم نفاست دے دا پاک ساک او سید وتۂ والی۔

دَدے اخلاقو خاوندان دَخالق او مخلوق پہ نظر کښې لوئے
او قدرمند وی۔ او چہ دا پکښې نۂ وی نو هغه دَهرچا پہ نظر
کښې سپک سپور او بے عزتہ وی۔

دا قسم بد عمله دَدے نیک عملو خلقو سرہ کینہ کوی
چہ دوی ولے عزتمند او ښۀ مشهور دی او دوی پہ دے
نۂ پوهیږی چہ دا کمال او عزت خو دوی تہ دا اخلاقو پہ وجہ

راغلے دے تہ غیرت اوکرہ دا اخلاق ځان کښ پیدا کړه
چہ تہ هم عزت مند شے۔

# عدل او عبادات

دخدائے په حقوقو کښ اول اول انصافی خبره داده چه
بل څوک دخدائے برابر او نه گنړلے شی او دده سره دومره
محبت اوشی چه دَے هر وخت په زړه کښ حاضر ناظر وی
دده احسانات شماری اوځان ورته ذلیله کوی ددهٔ نه ویریږی
دده نه درحمتو نو امید لری او دخپل ذلت دثبوت دپاره مقرر
بدنی عبادتونه کوی اوکه مالدار وی نو مالی قربانی کوی. دا
هرڅه په عدل کښ داخلے خبرے دی۔

کوره ستاسو په زمکه کښ چه بل څوک یوسے په زور او کری
نو تاسو به دیته ظلم نه وایئ؟ پس که خالق الله، شرک نه لوئے
ظلم ویلے دے نو ته پرے ولے اعتراض کوے؟

کوره مونږ هیله د مال قدرے مالکان یو او په دے کښ
بل چا ته بے اجازته دکار اختیار نه ورکوو۔ څو مونږ په خپل
زړهٔ لا سو خپو دا سے ملکیت نشته چه دا په چا خوځ کړو
یا ئے چا ته اوبخښو او خدائے د هرڅهٔ مالك دے ځکه چه

دَ هر څیز خالق دَے او هغهٔ دا مونږ ته دَ امانت په طور سره
راکړے - نو دا به د خالق سره څومره بے انصافي وی! چه دَ دهٔ
په مخلوق او مملوک کښ دَ بل چا رضا شروع کړو. او دَ الله
دَ پاره بل شریک اومنو - دا شرک که په علمی او اِعتقادی
رنگ کښ وی او که په عملی رنگ کښ وی۔

## صِلہ رحمی او اِحسان

د مور او پلار او دَ رشتے دَ خپلوانو او دوستانو سره ښهٔ معامله
کول عدل او انصاف دَے او د دوی حقوق ادا کول دی. مور
پلار د اولاد سره احسان کړے دَے نو اولاد هیله دَ دے
احسان بدله ادا کوی - مور پلار بے غرضه احسان کړے وو
اولاد دَ دے بدله کله ادا کولے شی؟

اِحسان خوږے ژبے دَ لاسونو خدمت په ژبه دَ چا دَ خیر
خبره کول بے بدله دَ چا سره ښهٔ کول دا دویم دَ دنیا ښکلے شوے
ښهٔ خوئ دے دریم متانت دے. غیرت، حیا ننگ ناموس
خیال ساتل دَ بے غیرتئ - بے حیائی په کارونو عمر مال او دولت
نه لګول دَ خیرنو پلیتو څیزونو نه وجود جامے. کور پاک صاف
ساتل - پلیت او ضرری څیزونه نه خوړل او نه څښل دا ټول

او پاکیزګئ په ذیل کښې راځي.

## دَ خنزیر غوښه

دَ خنزیر غوښه که هم وخُمونږ سپینه ږږې فرنګیان ئې خوري خو دَ هغوئي دَ دین سترګه رند که ده. نفیس طبیعتونه دَ داسې ځناور دغوښه کله خوړے شي چه دَ هغه خوراک دبني آدمو بولے وي او دا ځکه چه هره غذا په بني آدم کښې هم هغه خاصیت پیدا کوي. کوم چه په غذا کښې وي. سبزي خوارهٔ او غوښه خوړونکي جدا جدا قسم عادتونه لري اولنی بُزدل او دویمی بهادران وي.

نور ځناور په خپله ماده بد ګنړي او خنزیر بے غیرته په خپله ښځه بد نه ګنړي دے ورته ګوري او بل خنزیر راشي خپل حاجت پوره کړي. هم دا دَدے غوښې اثر دَے چه په دے بے دینه فرنګیانو کښې دا خوئ ورځ په ورځ زیاتیږي. نو دَ خنزیر غوښه خوړل دَ نفاست او متانت دوار ونه خلاف خبره ده

## خودکشي او شهادت

بل دَ ځان قتل منع دَے ځکه چه مونږ دَ الله تعالی مملوک یو مونږ به په ځان کښې دَ مالک په رضا تصرف کوو. که مونږ ځان قتل

کړو نو دا به دا سې شي چه لکه ته دَ يو کاريګر ترخه ستک بې وجې مات کړې۔ الله څو نو نه څه کار اخلي دا ظالم او لګيد هغه ئې قتل کړو نو دَ خدائې په څيز کښ ئې دَ ځانه زياتې اوکړو۔ نو دا صريح ظلم دې۔

ولې که خدائې اُووې چه دلته څه دَ حکم نه بغاوت کيږي او شي دوې منع کړي او په دې کښ بنده مرشه نو دا دا سې ده لکه کاريګر چاته ستک ورکړو چه کار پرې کوه۔ هغه کار کوو او په کار کولو کښ ئې ستک مات کړو نو دا جرم نه دې۔

دَ غسې الله وائي چه دا ځنا ور حلال لولې شي۔ دَ دۀ غوښه تاله ښۀ ده۔ نو بيا به مونږ دَ دۀ په ويا دَ ده مخلوق کښ حلاله کولې شو۔

نو خبره بيا اوږده شوه خو مطلب ئې دا وو چه کوم کار ونه چه په دې اخلاق کښ داخل وي هغه به ښۀ وي او چه دَ دې نه مخالف وي هغه به بد وي نو ټلور ښه خويونه شو او ټلور بد خويونه شو۔

# اخلاق او عملونه

دا خويونه ټخمونه دي او دَ بنده عملونه ساګې او پانړې دي۔

که میوه یوازے په تخم کښې نه لګی نو دغسے تش په دے خویونو
هیڅ میوه نه لګی بلکه څه رنګ چه د تخم د پاره سانګے او پانړے
پکار دی دغسے د خویونو د پاره عملونه پکار دی. که تخم بے
سانګو نشی ښکاره کیدے نو دغسے خویونه بے عمله نشی ښکاره
کیدے. ګورئ سخاوت بے ورکړه کله ښکاره کیږی. ښه خویونه
بے د خوږے ژبے کله ښکاره کیږی. بهادری بے د میدانِ جنګ
نه کله ښکاره کیږی دغسے عملونه هم بے د خوئ نه نه پیدا کیږی
لکه سانګے چه بے د تخم نه نه پیدا کیږی۔

نو تاسو پوهه شوئ چه ټول کارونه بے د دے اثره
اخلاقو نه نه پیدا کیږی. که د چا اخلاق ښه وو نو د هغهٔ نه
به ښهٔ کارونه کیږی او که د چا اخلاق بد وو نو د هغهٔ نه به بد
کارونه لیدے شی۔ او د هر تخم نه به د هغه مناسب میوے پیدا
کیږی. که تخم ښهٔ وو نو میوے به ښے وی او که تخم ناکاره وو نو
میوے به ناکاره وی. د دمره ده چه مونږ د ښهٔ اعمالو میوو ته
جزا او انعام وایو او د بدو اعمالو میوو ته سزا وایو۔

اخلاق یو تخم دے او څهٔ رنګ چه تخمونه رنګا رنګ وی
دغسے اخلاق هم قسم قسم وی. خو ل به په زمکه کښں راؤتو کیږی

او خوک نه را توکیږي . او زړونږ سزگي دي څه رنګ چه زمکې په
فرق دي د غسې زړونه هم په فرق دي . بعضې زړونه وارهٔ او
بعضې لوی وي څکه خوک ذهین او خوک غبي وي خوک بخیلان
او خوک سخیان وي . خوک پیدا ئشي شیطانان وي خوک وارهٔ
او نیکان وي په چالږ نصیحت ډیر اثر کوي او خوک په نصیحت
لا نا کارهٔ کیږي د دې مختلف قسم تخمونو او مختلف قسم زړونو
نه مختلف عملونه لکه د سانګو پیدا کیږي
خو دا خبره یاده کړئ چه د اخلاقو په زیاتي عملونه نه زیاتیږي
او د عملونو په زیاتي اخلاق نه زیاتیږي .
او په دې هم پوهه شئ چه څه رنګ د تخم ښهٔ والې بدوالې
د زمکې په اختیار کښې نه دې د غسې د اخلاقو ښهٔ والې بد والې
د زړونو په اختیار کښې نه دی .

زمکه غریبه خو تخم مناسب را توکول
کوي او لوړ سپوږمئ و دسره په دې کښې امداد کوي . که بالفرض
زمیندار په زمکه کښې تخم وانه چوی لو زمکه او غارمه به څه را
پیدا او لوئي کړي ؟ د غسې خدائے چه په زړهٔ کښې کوم د خوئي
تخم کولې دې د زړهٔ زمکه به اول د دې پالنه کوي او په وعظ او

نصیحت به ددے دیاران او سرے نخسے امداد کوی ۔

نو تاسو پوهه شوی ئے چه اخلاقو ته اخلاق والی ځکه چه دا دخدائے پیدائش دے په دے کښی دبنده څه دخل نشته او په دے هم پوهه شوے چه دمیوے چه هغه سزا جزا ده ددے دادہ مدار هم په دے خدائی تخم دے دخدائی تخم نه اول دبنده اعمال پیدا شو۔

نو بعضو خلقو چه په دے ځائے کښی دا سے ویلی وو چه بندګان دخپلو کاروونو پخپله پیدا کونکی دی ځکه که ددے خالق هم الله شی نو بیا به مونږ تجزا سزا څه رنګ راکوی! نو هغوی دے دا فکر اوکړی چه بنده که بالفرض دخپلو افعالو خالق شی نو بنده دخپلو اخلاقو چه تخم دے خالق نه دے. ځکه چه اخلاقو ته اخلاق ځکه وائی چه دا دخدائے پیدائش دے لکه سترګے غوږونه پوزه چه خدائے څه رنګ او غوښته هغسے ئے جوړ کړه دغسے اخلاق چه څه رنګ خدائے او غوښته هغسے ئے ورکړه او س که مونږ د خدائے په مخلوق سترګو او غوږونو کښی تبدیلی نشو کولے ۔ نو دهغه په اخلاقو کښی چه هغه راکړی دی څه رنګ بدلی کولے شو نو دمیوے فرق خو ددے تخم په وجه چه اخلاق دی راغے یعنی

جزا او سزا خود اخلاق په وجه راغله نو ستاسو د افعالو خالق بنده
منلو هیڅ فائده او نه کړه هسې مو ځان د خدائے سره په خالق والی
کښې برابر کړو - دوی د جزا او سزا په حقیقت نه پوهیږی دا خود اخلاقو
د تخم او د اعمالو د ونې د میوې نوم دے لکه و نه چه د زکے مخلوق یا د
خدائے مخلوق دے په دے کښې به میوه خواه مخواه لګی دغسے اعمالو ته که
خپل مخلوق او وائے او که د خدائے مخلوق ورته و وائے په دے به د جزا
او سزا میوه لږی او لکه چه مونږ په دے پوهیږو چه د میوې دا ان
مداد د تخم په ښه والی او بد والی وی او خلق وائی چه ونې ښه میوه
او کړه دغسے جزا او سزا په اخلاقو موقوف ده لیکن په رواج کښې خلق
وائی چه دا د ده د عمل جزا سزا ده -

کوری که مونږ بنده د خپلو افعالو خالق او منو نو د دے وجه به دا
وی چه ګویا مونږ وایو چه په مونږ د خدائے عبادت لازم دے او په
خدائے څمونږ د عملونو جزا سزا لازمه ده - ګویا دا جزا سزا څمونږ
د عمل مزدوری ده . نو بیا خو که خدائے وائی چه څما په تاسو حق دے
تاسو به څما عبادت کوئ . نو د بندیانو هم په خدائے حق شه چه
مونږ ود له عمل اوکړو مونږ ته ئے مزدوری راکړه . نو بیا خو خدائے او
بنده برابر شو ځکه چه خدائے آقا او بنده ئے نوکر شه ده مزدوری

اولیږه او جزا سزائے وا خستہ.

بل مونږ خپل ځان دَ ځان ملکیت او مانہ چہ گویا مونږ پہ خپلو طاقتونو دَ خدائے عبادت اوکړو ځکہ چہ مونږ تہ جزا پکار دہ. نو مونږ دَ ځان کلہ مالکان یو؟ څمونږ خالق او مالک خو خدائے دَے داځمونږ ملکیت صرف دَ ظاهری قبضے په وجه دَے خو سره دَ قبضے خدائے چہ خالق او مالک دَے هغہ مونږ وژنی او هغہ مونږ ژوندی ساتی نو څمونږ دَ ځان مالک والے دَ کومے راغے. مونږ خو دَ لوهار په لاس کښې دَ سنک هسے یو. داخو مره خطائی اوشوه چه مونږ ځان په دے طریقه دَ خدائے دَ ملکیت نہ اوبښکہ او په خپلہ دَ ځان دَ وچ مالکان شو.

تاسو تہ معلوم ثابته شوے دہ چہ څمونږ دا وجود خو اصلی نه دَے دا خو عارضی وجود دَے. دَ ځان دا کاذ رنه دَے. نو کار دِ دَ بل په څیز اوکړو او ترو ائے چہ زهٔ دَ خپلو عملونو خالق او مالک یم. څومره خطا شوے؟

بل دا چه که خدائے څمونږ آقا او مالک وی. او مونږ دَ دهٔ نوکران یو. کار کوو. او مزدوری اخلو نو بیا خو که مونږ مزدوری ته متاذ یو. نو آقا خدمت ته متاذ وی نو متازی دَ طرفینو نه ثابته شوه. حال دا دَے چه هغه خو بے پروا دَے په هغهٔ کښې خو ټول کمالات ازلی دی.

نو خلاصه دا شوه چه دَ ظاهري عالم څیزونه چه په سترګو غوږونو بویولو، څښلو، او لاس لګولو معلومیږي دا ټول په فرق فرق پیدا دي. څوک ښهٔ دي او څوک بد دي. دَ چا شکل ښائسته دے. دَ چا ناکاره دے. څوک خوږ څوک ترېخ دے څوک خوشبویه او څوک بدبویه دے. دَ غسې څو نږ دَ عملونو فرق دے. دَ چا عملونه ښه دي او دَ چا بد دي او یوازے عملونه نه بلکه دَ ذړهٔ خیالات او اخلاق ئے هم بعض ښه دي او بعض بد دي.

## دَ نبوّت ضرورت

اوس دا معلومول چه دا په عملونو او خویونو کښې فرق ولے دے؟ که دا خبره معلومه شي نو بیا به بنده دَ ښهٔ والی کوشش اوکړي.

ولے په ډیر فکر دا ثابته شوه چه دا خو ځما دَ عقل نه لرے خبره ده ځکه چه مثلاً اسونه واخله دَ ټولو قسمونه او دَ دُوی شکلونه او آوازونه دَ یو بل نه جدا جدا دي یا دَ غسے انسانان واخله او دَ غسے دَ دوی عملونه او اخلاق ټول جُدا جُدا دي. او ریښتیا خو دا ده چه که دا خبره عقل فیصله کولے شوے نو دا دومره اختلاف به ولے په مونږ کښې موجود وو. چه دَ یو ټولګی یوه عقیده ده او په یو عمل خوشحاله وی او بل په بل. دا هر څه خو هم دَ عقل کارنامے دي. عناصر دَ یو بل نه مخالف دي څوک ګرم دي څوک نرم

دی دغسے عملونه دی چه ځنه خو ډیر باریک او لطیف دی. ددے په ښه او بد ځمونږ عقلونه کله پوهیږی دَدے دَپاره خو د روحانی طبیب ضرورت دے چه مونږ دَپیدا کونکی خدائے دَطرف نه په تمیز د ښه بد پوهه کړی او دا به صحیح او ځنه خبره وی.

## عقل ناکافی دَے

بعضِ دوستان وائی چه بس ځمونږ دَپاره د عقل تابعداری کافی ده دین او مذهب ته حاجت نشته خو دا خبره به هله صحیح وه چه دَعقل دائیرے معلومات دے لکه دوه او دوه څلور کیږی ولے عقل غریب هر وخت په خپله په شک کښ وی نو ځمونږ به څه راهنمائی او کړی. خاصکر دَاعمال انوا د عقائدو او اخلاقو په باره کښ خو دا قسم یقینی فیصله عقل قطعاً نه شی کولے.

بل عقلونه د وګړو په تفاوت دی لکه یوه ذره. شمع. ډیوه. ستورے سپوږمئ او نمر شو. دَدے دَپاره خو دَکامل عقل ضرورت دے چه لکه دَنمر دی او په ده دَخواهش ګرد ونه وی. ځکه چه په محبت کښ عقل نه پاتے کیږی په دے وخت کښ عقل د دوستانو او دَځان عیبونه نه وینی. او دَځان او دَدوستانو لوړے نیکئ ته ډیره وائی په دے وجه ټولو قومونو ځان ته پیشوایان جوړ کړی دی. او دوی وائی چه د دوی دخدائے سره رابطه او تعلق دے

او دَ دوی خبره دَ خدائے خبره ده۔

خواوس په دے فکر پکار دے چه قومونه دَ خپلو پیشوایانو په باره کښې څه رنګ دعوے کوی؟ نو څوک وائی چه دا خلق بشر وی خو خدائے دَ دوی په واسطه نورو بندګانو ته خپل خبرونه رسوی او دوی دیته پیغمبر، رسول، او نبی وائی۔ دغه خلق دَ خپلے پیغمبرئ دعوی او کړی چه څوک وینا دَ خدائے وینا ده۔

بعضِ وائی چه دوی دَ خدائے ځامن دی (توبه)

بعضِ وائی چه په دوی کښې خدائے دا سے موجود دے لکه روح چه څوک په بدن کښې موجود دے دیته "اوتار" وائی۔

ځما اولے خبرے سره تعلق دے دا روستئ دواړه خبرے خود خدائی دَ شان نه بالکل خلاف خبرے دی ځکه چه په بنی آدم خولږه تنده نا جوړتیا هم راځی دے قضائے حاجت کوی او په دے تولو کښې دَ ے متاثر کمزورے لندوشک وی نو دا نقصانی صفات دَ خدائے نه شی کیدے۔

دَ دوی دا خیال ځکه پیدا شو یدے چه دوی په یو بنده کښې دعا خلقو نه زیات څه کمال اووینی نو دوی دا ګمان او کړی چه ګنے دا بنده نه دے بلکه خدائے دَ ے او دا کله کیدے شی؟ څوک او دَ خدائے

مناسبت ته لږ فکر او کړئ چه په حقیقت پوهه شئ - گورئ خدائے
زوندے دے دَ دینه معلومه شوه چه بنی آدم او حیوانات دَ خدائے سره یو قسم
غوندے مشابهت لري اُو به خاورے او وښے داسے نه وي - نو معلومه شوه
چه حیوانات دَ کتونه غوره دي بیا مونږ او لیده چه خدائے عالِم دے نو
انسان په علم کښ دَ باقي جاندارو نه زیات دے د دے نه ثابته شوه چه
انسان افضل دے. بیا د انسانانو ځوک په علم کښ ډیو بل نه زیات دي
دَ چا عملونه ښه دي. نو دوی دَ جاهلانو بد اخلاقو نه ښه دي.

په دے هم ځان پوهه کړئ چه په انسان کښ مختلف اندامونه دَ مختلف
کارونو دَ پاره جوړ دي لکه سترگے لیدل کوي او ریده نشي کولے غوږ ونه
اوریدل کوي لیدل نشي کولے نو دغسے الله بعض بندگان داسے جوړ کړه
چه هغوی ته انوار الٰهي په نظر راځي او نورو ته نه راځي یو بنده داسے وي چه هغه
دَ خدائے کلام د خدائے دَ شان مناسب اوري. او نورو سره ناست وي -
هغوی ئے نه اوري د دے په باره کښ که یو امانت گر چه پاک ساک ژوند
لري دا او ائي چه زهٔ دَ خدائے کلام اورم نو مونږ به دا ناممکن نه گڼړو
دغسے څوک دا دنیوي سترگے په دنیا کښ دَ خدائے دَ لیدو نه ړندے دي
ولے که الله تعالیٰ بعض خلقو ته داسے قوت ورکړي چه هغه په دے
سترگو خدائے او وینی نو دا ولے ناممکن وي.

# د حواس خمسه په زړه کښ دي

د ظاهري سترګې او غوږونه د چشمو هسې دي اصلي سترګې او غوږونه
خو په زړه کښ دي. کوم خلق چه هر وخت د الله په باره کښ فکرونه کوي او د
دُنیا کارونه د مجبورۍ نه په ناخوالۍ کوي د دوي چه مرګ شي نو د دوي د زړه
هغه خدائي فکرونه به راښکاره شي د خدائے یاد خو د ډیرے یاد د محبت په وجه
کیږي او دا قسم یاد په زړه کیږي او په اخلاص کیږي تولکه چه په خوب کښې
په لږ غونډې د دنیا نه په اړخ کیږي د زړه فکرونه راښکاره شي چه پس سړی کیږي
حالت کښ چه د دنیا تعلقات بالکل ختم شي او هیڅ قسم تشویش د بنده
سره نه وي. د هغه د زړه یاد به دو نر ښکاره شي تاسو اوګورئ نو دیرا آتشي
شیشه کښ ښکله رنړا اچوي. او دا ئے د ښکلي ډیرے صفائي په وجه د اے
قبوله کړي چه راتینږ ئے کړي او بیا دا شیشه په بل څیز اولګوي دغسے خدائے
پاک ترین مخلوق چه پیغمبران دي هغوي د الله تعالی انوار په ځان کښ
راتینږ کړي او چه څوک ورسره څومره ربط ساتي د ومره د هغوي
د هغه په زړه کښ د هغه نه انوار او فیوض راځي. د ارسول د هغے لطیف
او نازکو عملونو په ښه والي بد والي پوهیږي چه د هغے نه نور خلق بے
خبره وي. د هغه د خوږ نبي صلے الله علیه وسلم هغه ارشادات دي چه هغے
ته احادیث وائي څوک چه د هغوي سره محبت اوکړي هغه د عاموشیشو هسے

دستور ویې نوم اوستا یلې شي . او هغو ئي نړ دوستو خلق ځوک لا اللتین
ځوک ویوه او ځوک بریلیمید و نکي ذدات دې دد یے یولو انوادواو
برکا تو سرچشمه قرآن شریف دے .

سبه به دادی چه زهٔ دا قدر ے لیکن فی الحال کافی او گنړم او دزباتی
لیکلو د پاره د خدائے نه سوال اوکړم چه که هغه ماته تو غونډ علم را کړیدے
چه هغه چا نیکا نوته اوائی چه تا سو دے عاجز د لیکلو د پاره د چهاپ او
اشاعت انتظام اوکړئ . دبه کمځما نول دینبت ژلے شي ستاد
دے احسان شکریه به ادا نه کړے شم چه تازه د خپل کلام به پو
پوهه کولو مشغوله کړم . دا هر څه ته کوے چه تر زهٔ او چه تر دا
کار؟ اَلحَمدُ لَكَ یَا اَللّٰهُ حَمدًا کَثِیرًا طَیِّبًا مُبَارَکًا فِیهِ . تمت بالخ

مصنف الرحمن

ل ۱۰۰۰

منظور پریس

هدیه

